**پاملرنه !** کتابونه زموږ او ستاسې ټل پاتې ملګري دي،
نو د کتابونو ښه ساتنه زموږ د ټولو دنده ، ده.




# یادونه

دشانتي رضاکاره ټولنه ویاړي چې د خپلو نورو ټولنیزو او ښوونیزو خدمتونو په لړ کې د افغان ماشومانو د ذهني او اخلاقي سالمې ودې لپاره د کیسه ایزو کتابونو په چاپولو پیل کوي.

داچې دکیسو ویل دماشومانو (کمکیانو) په ذهني وده ،اخلاقي روزنه داستعدادونو په غوړېدو، دلغتونو دزېرمې په پیاوړتیا او دهغوی د معلوماتو په پراختیاکې خورا ارزښت لري ، نو ځکه مونږ لویان ، والدین او ښوونکي هڅوو او سپارښتنه کووچې ماشومانو ته وخت په وخت اخلاقي او روزنیزې کیسې ووایې.

دیادولو وړه ده چې زمونږه چمتو شوې کیسې ټولې افغاني کیسې دي او په افغاني ټولنه کې د پخوا څخه موجودې او تر اوسه دخلکو په منځ کې په دودیزه توګه ویل کېږي.

دادی په دې لړکې د( شپونکي او لیوه ) کیسه په انځوریزه بڼه نازولوماشومانو ته وړاندې کوو. هیله ده چې ګلالي ماشومان دغه کیسه په مینه ، مینه ولولي ، خوند اوګټه ترې واخلي. مونږ به ګرانو کمکیانو ته چې دسبا ټولنې مشران دي دغه ډول نورې روزنیزې کیسې هم ډالۍ کړو.

په مینه

دشانتي رضاکاره ټولنه

(SVA)



يو شپونکي کلي ته نږدې په يو دشت کې هره ورځ رمه څروله.

دغه شپونکی د کلي خلکو پېژنده ، چې د اړتیا وړ شیان به یې د کلیوالو څخه غوښتل.



یوه ورځ شپونکي په زوره نارې کړې چې لېوه راغی ، خلکو مرستې ته راشئ !



د کلي خلک ډانګي په لاس د شپونکي مرستې ته لاړل.



کله چې خلک د شپونکي خوا ته ورسېدل ، رمه څرېدله او لېوه هم نه و.



خلکو شپونکي ته وویل: لېوه چېرته دی؟ شپونکی چپ ودرېد ، ویې ویل : ما ټوکې کولې.



خلک بېرته خپل کلي ته ستانه شول.



بله ورځ بیا شپونکي د لېوه د راتګ خبر ورکړ او په چیغو یې خلک مرستې ته وغوښتل.





دا ځل هم چې خلک د شپونکي مرستې ته راغلل ، لېوه نه و.

شپونکي وخندل، ويې ويل: ما ټوکې کولې.



څو ورځې وروسته چې لېوه په رښتیا د شپونکي په رمه برید وکړ.



ډېرې چيغې يې ووهلې او د مرستې غوښتنه يې وکړه ،



خو خلکو فکر وکړ چې دروغ وايي ، نو لېوه د رمې منځ ته ننوت او خپل بريد يې اوږد کړ.



نو هېڅوک مرستې ته ورنه غلل ، لېوه د شپونکي مېږې وخوړلې او ...





شپونکی ونې ته په ختلو
د خوړلو نه روغ پاتې شو.

شپونکي د دغه پېښې وروسته د دروغ ویلو څخه توبه وویستله.

(پای)






## پوښتنې :

۱ ـ شپونکي خپل رمه چېرته څروله ؟

۲ ـ ولې خلک ډانګي په لاس د شپونکي مرستې ته لاړل ؟

۳ ـ شپونکي خلکو ته په ځواب کې څه وویل ؟

٤ ـ کله چې لېوه په رښتیا د شپونکي په رمه برید وکړ ، څه پېښه وشوه ؟

٥ ـ په پای کې شپونکي څه وکړل ؟




## د شانتي رضاکاره ټولنې پروګرام

خپرونکې اداره: د شانتي رضاکاره ټولنه (SVA)

د کتابتـون څانګه د شانتي رضاکاره ټولنې کارکوونکي.

کـتنپلاوی: حبیب الله زړه سواند (شینواری) پوهنیار عبدالوحید، پوهنیار عبدالرشید، پوهیالی علاوالدین، پوهیالی یار محمد، نقیب الله او استادیار محمد (کوچی)

د چاپ اجازه: د ښوونې او روزنې وزارت او دننګرهار د پوهنې ریاست

انځورګر: حمید (ماهر)

د چاپ ځای: پیلك آرټ پریس، پیښور فون: ۲۱۲۵۸۹

د چاپ کال: ۲۰۰۴ - ۱۳۸۲

پته: د ښوونې او روزنې پوهنځي شاته، دوهمه کوڅه، دریم کور
د شانتي رضاکاره ټولنې دفتر، جلال آباد - افغانستان

د سټلایټ لمبر: ۸۷۳۷۶۱۹۳۳۵۴۷..  د موبایل لمبر ۲۲۲۴۱۴-۰۹۳۷۰..  ۷۱۱۳۴۶ - ۰۹۳۷۰..

